


# حقیقت انقلاب ثور

د افغانستان د خلك ديموكراتيك گوند د مركزي كميتي ارگان

سه‌شنبه د ۱۳۵۹ کال
د جدی ۳۰
JAN. 20. 1981
۶۰ گڼه
د تاسیس کال ۱۳۵۹


# د افغانستان د دموكراتيك جمهوري حكومت اعلاميه

دافغانستان دموكراتيك جمهوري حكومت يو ځل بيا لازم بولي چې په اصطلاح د افغاني كډوالو د قضيې په باب خپل دريځ په دې ډول بيان كړي:

هغه مثبت بدلونونه چې په افغانستان كې د ثور انقلاب په نوي پړاو كې پيل شوي دي دهيواد د زيار كښو خلكو د پراخو پرگنو له‌خواله پخوازيات درك او د ملاتړ وړگرځي .

دغه بدلونونه په هيواد كې دوگړني حكومت د پياوړ تيا اقتصادي پرمختيا دځمكو د اصلاحاتو د تطبيق او د نظم اوقانون د ټينگښت او د حالاتو د اعادي ځرگندوي دي .

دملي او وطنپالو ځواكو نو جرگه‌چې په دې وروستيو وختو نو كې د پراخې پلار وطني ملي‌جبهې د بنسټ ايښودلو په‌غرض ددغه واحد محور په شاوخوا باندې زمونږ دټولني اوپه هيواد كې دحالاتو د ټينگښت د ليل د هغو كسانو لپاره بيز راستنيدل دي چې د حفيظ الله امين دحكومت دويري اوډاردحالت له امله د ۱۳۵۸ كال د جدي له شپږمې نيټې څخه مخكې له وطن څخه تللي وو. بوازې په دې وروستيو وختو كې په لسگونو زره تنه د ښارو نو اوكليو اوسيدونكي وطن ته راستانه شول‌اود دغو راستنيدلو اندازه ورځ په ورځ دزياتوالي په حال كې ده، خو د ثور انقلاب د دښمنانو د ناوړو او دروغجنو تبليغاتو د اغيزو په نتيجه كې يوه برخه هغه افغانان چې له وطن څخه تللي ووتر اوسه پورې‌له هيواد څخه په‌بهر كې پاتې دي .

د افغانستان دموكراتيك جمهوري حكومت په داسې حال كې چې د زړه له كومې هيله كوي چې هغوی هم ژر تر ژره خپل وطن كورونواوكورنيو ته راشي يو ځل بيا د ې هيواد ټولو وطنوالو او بچيانو ته چې په‌موقتي توگه دغولوونكو تبليغاتو او د پخوانيوظلمونو په نتيجه كې په غربت كې لويدلي بلنه وركوي چې وطن ته راستانه شي او د هغو كسانو د عمومي بخښني په‌باب چې لاسونه يې د خپلو وطنوالو په‌وينو كړ شوي نه وي د افغانستان د حكومت له فيصلې څخه استفاده وكړي .

دغه عمومي بخښنه مخكې اعلام‌شوی اوپه دوامداره توگه د تطبيق وړده. حكومت تضمينوي چې د افغانستان دموكراتيك جمهوريت د اساسي‌اصولو له‌مخې به ددغو كسانو لپاره خاني امنيت". داستوگنې د ځاى د كار ډول

( ۲ مخ )

## هيواد ته د ربېړيدلو كارگرانو او كورنيو راستنيدل

• په‌دې وروستيو وختوكې اووه سوه اويا تنه كارگران او دوه سوه دوه كورنۍ داسلام كلاو تورخم دبندرونو لارې خپل گران هيواد ته راستنې شوي دي، اوداسلام كلا دسرحدي كنډك او دتورخم دسرحدي كنډك دقوماندانانو دافسرانو او سر تيرولو خوابي دوينا ووپه كولو سره هر كلي وشو.

دسرحدي قواوو دلويې قوماندانۍ دخبر له‌مخې اووه سوه اوياتنه او اووه ديرش كورنۍ داسلام كلا دبندر له لارې اويو سلو پنځه شپيته كورنۍ دتورخم دبندر له لارې هيواد ته راستنې شوي اودهغوی څخه خو تنو د نورو په نمايندگۍ دوينا وو په كولو سره د ثور انقلاب دبشپړ تيايي نوي پړاو دتحقق او دگران افغانستان د ...سورتيا په لاره كې د خپل هر ډول انقلابي كار او مبارزې وعده وركړه .

(ب)



دوی د اجتماعي نظم برېگا دونه ، زمونږ د انقلابي وطن باشرفه بچيان د انقلاب دلارې سر سپارلي مدافعين دي .

زمونږ دهيواد له مضمونه ډك معاصر تاريخ به دهغه ځوانانو‌ياد چې د ځوانۍ ټوله انرژي يې د انقلاب په‌لاره كې‌وقف كړيده له ياده ونه باسي .

# د افغانستان د دموكراتيك جمهوري دولت د بهرنيو چارو دوزارت اعلاميه

دافغانستان د دموكراتيك جمهوريت‌دبهر نيو چارو وزارت د اسلامي‌جرگې‌دسازمان د هيواد و نود مشرانو د غونډې په ارتباط‌چې د ۱۹۸۱ د جنوري په پای‌كې په مكه معظمه كې‌جوړيږي‌دغه اعلاميه خپروي .

داسلامي جرگې د سازمان نژدې راتلونكې غونډه د اسلامي نړۍ او د منځني ختيځ د تاريخ په يوه ډيره حساسه او كړكيچنه گړۍ كې پداسې وخت كې‌جوړيږي‌چې‌امپرياليزم په تيره بيا دامريكا امپرياليزم او صهيونيزم په‌فعاله توگه داسې نقشې تعقيبوي‌چې دسيمې او نړۍ سوله په عمومي‌توگه تهديدوي . د افغانستان ديموكراتيك جمهوري حكومت عقيده لري چې بنه‌ده داسلامي نړۍ هيوادو نه خپله پاملرنه دغه ټكې ته راواړوي چې په څه‌ډول ددغو هيواد ونو ډيرې مهمې ستونزې اولانجمنې مسالې حل شي. هغه‌مسالې چې د اسرائيلو له تيرې، د عربي خاورې له نيولو د اسرائيلو ، مصراو امريكا له جلا مانورو څخه پيدا كيږي.

هغوی بايد په عربو ورونو خلكو باندې د امريكا دامپرياليزم وسله‌وال تيرې او دزور نوري بڼې وغندي له خليج نه‌د امريكا د ټوځې او سمندري قوتونو د سملاسي وتلو او پدې سيمه كې دهغه دپوځي اډود ړنگيدلوغوښتنه وكړي دغه راز هغوی بايد غوښتنه وكړي چې په منځني او نژدې ختيځ كې دبهرني پوځي لارې د پراختيا مخه ونيوله شي .

يوه ډيره‌سملاسي‌مساله ديوه‌خپلواك دولت د حق د جوړيدو او د قدس د ښارد آزادي د حق په گډون‌د فلسطين عربو دځرگندو حقوقو د تحقق دلارو اووسايلو لټول دي .

داسلامي جرگې د سازمان د غړيو هيوادو نو د مشرانو جرگه دې د عراق اوايران تر منځ په خواشينو ونكې جگړه باندې هم خبرې وكړي.

جرگه بايد د دغه اخ او ډب دسوله‌ييز حل لپاره يوه لاره پيدا كړي.په پای كې داسلامي وروڼو هيوادونو دټولو قوتونو ټينگښت او يووالي‌بايد ددې جرگې ستره نتيجه وي .

دغه راز معلومه شويده چې په ځينو اسلامي هيوادو نو كې ځيني ارتجاعي او واكمنې ټولنې غواړي چې يوځل بيا د اسلامي جرگې د سازمان دمشرانو د غونډې په كړنلاره كې په اصطلاح د افغانستان مسالې ته‌ځای وركړي ،څرگنده ده چې دغه هلې‌ځلې هيڅكله د اسلامي هيوادو نو په گټو بورې اړه نه لري‌اوبو ازې د افغانستان په شاوخوا كې د حالاتو په زياتي خړپړتيا كې مرسته كوي او يوازې‌د افغانستان ضد او د شوروي اتحادضد تبليغاتوته دلمنې وهلو په غرض كيږي .

داچې په افغانستان كې حالات څه ډول دي زموږ د هيواد يوه‌بيځي كورنۍ موضوع ده او هيڅكله د سيمې او نړۍ سولې‌او امنيت‌ته كوم خطر نه متوجه كوي .

هيڅ ډول د افغانستان او پاكستان اوافغانستان او ايران تر منځ لانجه نشته د افغانستان د موكراتيك جمهوريت په‌دغو هيواد و باندې دځمكې هيڅ ډول ادعا نلري . البته داواقعيت دی‌چې د انقلابي ضد باندونو له خوا

( ۲ مخ )

# د هيواد د پوهنتونونو په چارو كې د اخ.د.س. ... لانه‌ونډه

دلوړو‌او‌مسلكي تحصيلاتو په موسسو كې دافغانستان دځوانانو دديموكراتيك سازمان دتدريسي او اداري مسئولينواو كميټو دهمكارۍ پروتوكول دجدي په ۲۵ دلوړو اومسلكي‌تحصيلاتو دوزارت اوداخ.د.س ترمنځ لاسليك شو .

ددغه پروتوكول هدف دمحصلانو ترمنځ دصميميت او متقابلې همكارۍ دفضا پيدا كول، زده‌كړې او پالنې په‌نسبت مسئولانه او اگاهانه چلند، په علمي او تحقيقاتي فعاليتونو كې فعاله برخه اخيستنه ،پخپله ددرسونو خپلو اگه او منظمه زده كړه، دزده‌كړې په علمي پړ ا تيكې تحصيلي و توليدي فعاليتو نو او دعلمي تجربو په رواجولو كې منظم گډون دی .

دغه راز ددغه پروتوكول له مخې‌په پوهنځيو، صنوفو اوډلګې دښوونې‌او روزنې دفعاليتونو داجرا په لاره كې دزده‌كړې په انضباط او دسپلين منكې دافغانستان دځوانانو دديموكراتيك سازمان كميټې هراړخيزې هلې ځلې كوي او ددغو وظيفو په سرته رسولو موظفې دي .

په هرممكن ځاى‌كې دبيرته پاتې محصلينو سره په مرسته‌ كې گډون اودزده كړې په جريان كې دهغو ی دستونزو حل .

دځوانانو دښوونې او روزنې په فعاليتونو كې داخ.د.س. درول او مقام په‌باب‌په‌شعبه وي او گروپي ډول دلومړنيو‌سازمانونو‌په غونډوكې دخبرو اترو اوهركو سازمان وركول، پد غو كارونو اودنورو مربوطو وظيفو په‌كارونوكې دستونزو او نيمگړتياو‌تشخيص او دهغو دلرې كولو دپاره دځانگړو اقداماتو او تدبيرونو نيول .

برسيره پردې پدې پروتوكول كې د محصلانو د زده‌كړې اوښوونې اود سازمان وركولو او پخپله زده كړو دكار دگټورتيا په ارتباط يولړ مكلفيتونه د اخ.د.س. دكميټو په غاړه اچول شويدي .

(ب)

## د انقلاب څخه د دفاع په‌لاره كې

دقهرمان وسله وال پوځ‌او دخارندوی او گوندي فعالينو د بې امانه او زړ وري‌مبارزې له امله پدې وروستيو وختو كې د كندز ولايت دخان آباد دولسوالۍ مربوط دنيك بې په كلي كې‌داشرارويوه ډله له پښو غورزول‌شوې او دهغه ځاى پټمن اوز يار ايستو نكي خلك ددغو لارې وهو نكو له شر څخه خلاص‌شول .

دغه راز دانقلاب ضد يوشمير كسان دغه دوطن‌شرف او ناموس او دخلكو د آرامۍ‌دښمنان چې له څه مودې راهيسې يې په خاينانه توگه‌په سړي وژنې او لارې‌وهنې لاس پورې كاوه اودكندز ولايت د چاردرې دولسوالۍ مربوط دعين المجر د كلي‌زيار ايستو نكي خلك يې ځورول پدې وروستيو وختوكې دوسله وال پوځ .گوندي فعالينو او خارندوي له خوادهغه كلي د خلكو په همكارۍ وتړل شول .

ديوبل خبر له مخې يوشمير دغه خاينان، دارتجاع اجيران اودامريكا دامپرياليزم‌نوكران چې د كندز ولايت دخان آباد دولسوالۍ مربوط‌دچوغه سفلې د كلي د خلكو عادي ژوند يې گډوډ كړي وو‌پدې وروستيو وختو كې دوسله وال پوځ خارندوی اوگوندي فعالينو له خوا د دغه كلي د زيار ايستو نكو خلكو په همكارۍ دهغوی دمشر ثمر الدين په شمول و تړل شول .

دامنيتي خبر ځاينو دربوټ له مخې له هغوی څخه يوه اندازه امريكايي ، چيني ،پاكستانۍ او مصري و سلې لاسې بمونه ،گولۍ او تبليغاتي‌پاڼې چې په بهر كې دانقلاب ضد عناصرو سره ددغه انقلابي ضد ډلوارتباط ثابتوي لاس ته راغلي دي .

دغه‌راز يوشمير اشرار چې دبغلان ولايت د شوزا د كلي دخلكو د آرام ژوند او سوله ييز كاريې گډوډ كړي و د امنيتي پوځ او گوندي فعالينوله خوا و تړل شول .

ديوبل خبر له مخې داشرارو يوه ډله چې د څه مودې را په دې خواېې دبادغيس ولايت دغورماچ دولسوالۍ په‌مربوطوكليو كې‌د هغې ولسوالۍ د زيار كښو خلكو سوكالي اونيكمرغي گډوډوله دهرات د عسكري پوځ دسر تيرو اوافسرانو له خواد گوندي فعالينو او هغه ځاى د ښځونوخلكو په همكارۍ دخپلوعملونو په جزا رسيدلي ده .

ديو بل خبر له مخې‌دهغې‌ولسوالۍ دري سوه تنه زيار كښو خلك چې‌دانقلاب‌دښمنانو‌غولولي وو . ولسوالۍ ته‌لاړل په خپلو تيروعملونو باندې‌يې‌دپښيمانۍ په ترځ كې خپلې وسلې په ځمكه كيښودلې اوژمنه‌يې وكړه چې د خپلې‌وينې تر وروستي ځاڅكي پورې دثور انقلاب ، په تيره بيا دهغه دنوي او بشپړ تيايي پړاو دار زښتو نو دفاع كوي .

ديوبل خبر له مخې داشرارو زياتې ډ لې چې دهرات ولايت دادرسكن انجيل اوشينډنډ دولسواليو په مربوطاتو كې‌يې په سړي وژنه ،غلا او لارو هنه لاس پورې كاوه او ددغو ولسواليودزيار‌كښو خلكو سو له ييز ژوند يې گډوډ اوه پدې وروستيووختونو كې دهرات ولايت دوسله وال پوځ ، جنگياليو‌خارند ويانو او گوندي فعالينو له خوا نيول شويدي .

دهرات ولايت د يو خبرځاى د خبر له مخې يو شمير اشرار چې له‌څه مودې را پدې‌خوايي د شينډنډ ، او هرات ترمنځ مو ټرو نه درول د سپرليو نغدې پيسې او مالونه يې غلا كول ددغه انساني ضدعمل د كولو په وخت كې‌دوسله وال پوځ خارندو يانواوگوندي‌فعالينو له خوا وتړل شول .

(ب)

## د السلوادور د خلكو هدف د انقلابي او دموكراتيك حكومت جوړول دي

په سوسياليستي هيواد و كې د السلوادور د ديموكراتيكې انقلابي جبهې استازي ويلي دي چې په السلوادور كې دمترقي اوديموكراتيكو ځواكونو برغل دهغه هيواد دارتجاعي رژيم نسكورولو ته متوجه دي چې دامريكا په ملاتړ دواك خاوند دي .

ده دبرلين دنوی اس دويچلند له ورځپاڼې سره دمركې په ترځ كې ويلي دي چې دالسلوادور دخلكو دآزادۍ غوښتونكو مبارزو هدف ديوه داسې انقلابي او ديموكراتيك حكومت جوړول دي چې په دغه هيواد كې ديموكراتيكې آزادۍ اعاده كړي او د داسې سياست پيروي‌وكړي چې دخلكو دپرگنو گټې پكې وي .

ده پدغه مركې كې ځرگنده كړيده چې دالسلوادورارتجاعي پوځي حكومت دكورنيو اله گوله كوونكو او دامريكا دامپرياليزم په ملا تړ السلوادور دتجريد حال ته رسولي دي .

(ب)

## بهرني خبرونه: واقعيتونه ، پيښې

دانگلستان پارلماني هيأت:

# دافغانستان حكومت پر حالاتو بشپړ تسلط لري

دانگلستان دپارلمان دريو وكيلانو چې پدې وروستيو وختو كې افغانستان ته سفر كړ يدې وغوښتل چې دانگلستان حكومت دې دافغانستان د ديمو كراتيك جمهوريت په مقابل كې خپل دريځ بدل كړي .

ددغه هيات غړي رونالډبراون،رابرت ليدرلند اوالن رابرتس وه. هغوی په يوه مطبوعاتي مركه كې چې دانگلستان دپارلمان په ودانۍ كې دگڼ شمير‌خبرياليانو په وړاندې وكړه ټينگاروكړچې دافغانستان ديموكراتيك‌جمهوري‌حكومت په‌هيواد كې په حالاتو پوره مسلطدی اودخلكو كلك ملاتړ ورسره دی .

هغوی وويل دافغانستان په ښارونو او ځينو هغو سيمو كې چې ويې‌ليدلې روند ارام اوخلك په عادي توگه‌پخپل كار بوخت وو .

هغوی وويل هغه‌پراخ اوسنی بداوونه چې په افغانستان كې دافغانستان دخلكو دپوره اكثريت په ملاتړ منځته راغلي دي داحقيقت ځرگندوي چې افغاني مقامات په افغانستان كې په حالاتو باندې پوره تسلط لري .

ددغه دری كسيز هيات غړيو يوه وينا خپره كړې اوپه هغې كې‌يې زياته كړيده هغوی په افغانستان كې دخپل سفر په وخت كې داسې باوري‌اطلاعات ترلاسه كړل چې ثابتوي دافغانستان‌په باب دلويديځو مطبوعاتو رپوټونه له مبالغې ډك‌دي‌او هيڅكله حقيقت نلري.

دغو دريوتنو ځرگنده كړه چې د ا.د.ج. حكومت هغوی ته داوخت برابر كړ هرهغه ځاى‌چې غواړي په آزاد ډول يې وگوري او دخلكو ديېلو بيلو طبقو له استازو سره دحكومتي مقاماتو له هيڅ ډول فشارنه پرته خبرې وكړي .

ددغه هيات يوه غړي‌الن رابرتس‌په اصطلاح دافغانستان دموضوع په باب دلويديځو پروپاگندې چې په‌لويديځ كې دپېژندل شويو ځواكونو له خوا پيل شوي دي وغندلې .

ده ټينگار وكړ چې دغه هلې ځلې دوسلو دزورازمايلو دنوي پړاو د پر ځاى ښودلو او دسړې جگړې دمربوطې پروپاگندو لپاره دي چې دلويديځو هيواد وله خوا پيل شويدي .

هغوی‌دامريكامتحدايالات، پاكستان، چين‌اومصرچې په‌افغانستان‌كې دانقلاب ضد عناصرو ملاتړ كوي وغندل وي ويل هغوی هيڅكله ددغه شان لاس وهنو طرفدارنه دي .

دغو دريو وكيلانو ځرگنده كړه د اخ.د.گ. دمركزي كميټې دعمومي منشي د ا.د.ج. دانقلابي شورا درئيس اوصدراعظم ببرك كارمل په گډون د ا.د.ج له مشرانو سره خپلو خبرو هغوی په دې باوري كړل چې افغانستان دجرگې په ميز باندې دټولو مخالفتونو حل او له گاونډيو هيوادو سره داړيكو ټينگول غواړي .

هغوی وويل چې ببرك كارمل له پاكستان اوايران سره له هر ډول بهرني لاس وهني پرته دملي‌حاكميت، او خاورې دتماميت د اصولو له مخې دخبرو په باب دافغانستان په كلك تمايل ټينگار كړيدی .

هغوی باور څرگند كړ چې دغه شان يوځل به په سيمه كې دسولې د فضا د ټينگښت داعادې اوپه ټوله نړۍ كې دسولې ددعيې په لاركې يو گټوررول ولري .

دبين المللي خبري منابعو دربوټ‌له مخې دانگلستان دپارلماني هيات يوه غړي رونالډبراون چې افغانستان ته‌يې سفرو كړ په افغانستان كې دشوروي اتحاد دمحدودو پوځي قطعاتو په باب وويل دغه قطعات د ا.د.ج حكومت په بلنه دغه هيواد ته راغلي دي او خپل هيوا د ته به د هغوی د ستنيد و موضوع هم دافغانستان يوه كورنۍ مسالې ه او دافغانستان په دولت پورې اړه لري .

(ب)

# انقلاب دخپل ټینګښت په لار کی

دسیاسی حاکمیت مسا له د

هرانقلاب لهٔپاره اساسی‌مسا له

ده.دثور انقلاب دغه منسا له د

استبداد ضد ، ارتجا ع ضداو امپریالیزم‌ضد مبارزه کی‌دثو ر داوو می نیتی په‌بریا لی‌پاڅون حل‌کړه ، خو ددی وا قعیـــت

له مخی چی دانقلاب ټـو ل ضد قوتونه د خپلی ناکا مـی په‌سبا راپاڅیږ ی او په‌خـــو

چنده کینه او نفر ت اود خپل تیر سو کا له‌ژ و ند دبیـــا اعاد ی‌په خا طر په خپل ټو ل قوت سره دانقلاب پر ضـــد دریږی.

د دی اصل لـه مخی چـی انقلاب باید له‌ځانه دفاع‌وکړی؟ انقلاب دخپل ځا ن څخه‌دد فاع په‌جر یان دټولو ارتجا عی ا و امپریا لیستی قوتونو کینه او نفر ت‌راو پاراوه.

پدی اساس دانقلاب‌دتکا ملی پړاو ورو‌سته کور نی ارتجاع دسیمی دارتجا ع بین المللـی امپریا لیزم د امریکا دامپریا- لیزم اود چینی جوج ما جو ج صفته لوی غوښتو نکو پـــه لمسه ، بیاسر راپور ته کړ .

یعنی دانقلاب ضد سره‌مبارزی دانقلاب په‌تکا ملی پړ او کـی خپل‌ژ ور او پریکړ ی شکـــل غوره کړ . خو نوی تکا ملـی

پړاو دخپل ټینګښت په لارکی دری اساسی‌کا رو نـــــه وکړل.

۱ـ دټولو بهر نیو را لیږل شو یو اجیرو بانډو نوما تول، اودد غه اجیرو بانډو نو ، او کورنی ارتجاع په سازش سره

په‌وا قعیت‌کی دانقلاب ضد هر ډول مقاو مت ما تول او پـــه جبهه ای اومنظم شکل ،د ټولو یرغلګرو او اجیرو بانډو نو له منځه وړ ل چی په بهـــر کی‌د امپریا لیزم دپاکستا ن دپو- ځیانو اود سیمی دارتجا ع به لمسه روزل‌کیدل .

۲ـ دانقلاب و سله والـــه دفاع، په وسله واله او منظمه تو ګه دانقلا بی قوتونوسمبا- لښت. اود نوی انقلا بی ا و

وسله‌والو قو تونو ایجادول‌چی په تما مه ما نا دانقلا ب‌دګټ‌و څخه دفا ع و کړ ی ښځتـــــه راتلل.

۳ـ ددا سی سیا ســـــی حاکمیت ټینګول ، چی زیاړ-

ایستونکی او خوا ریکښـــــی پرګنی یی دافغا نستا ن‌دخلک دمو کرا تیك ګو ند په شا و خوا راټو لی‌کړ ی اودهمد غه سیاسی حاکمیت ایجادو ل‌چی بنسټ یی په خلکو کی دی اود خلکواودخلکو ددښمنانو ترمنځ د مبارز ی پرو سه څرګنوی.

له‌بله پلوه دانـــوی حاکمیت دخلکو د پراخو پر ګنو دګټو ساتونکی دی، چی له هغه‌څخه دپرګنو دفاع پیاوړی مــا.دی ریښی لری.

پور تنی دری اصله لکــــه څنګه چی‌یو له‌بله سره نژ دی اړ یکی لر لی همدا رنګه‌دخلکو انقلاب اود هیواد له سر ـ نو شت سره هم‌ټینګی اړ یکی لری.

تقر یبا دیو کال په موده‌کی دګو ند دفیصلو او پریکړ وله مخی اود ګو ند اوانقلا ب‌دټولو قو تو نو دسمبالښت په‌نتیجه کی دانقلاب ضد تقر یبا له پښو لو ید او په همدی ‌ډ کی د خلکو دژو ند دمصؤ نیت دتا مین په‌برخه کی ستر ګام واخیستل‌شو .

دغه کار په‌وا قعیت کـــی دخلکو او ګو ند دعاد لا نـــه مبارز ی سره اړه لری‌اوددغه

مبارز ی داړ تیا له مخی باید نوی انقلابی و سله وا لـــــه دفاع وکړ ی . دو‌سله وا لـ- بو ځ ځار ندو ی قواوو ، ا و سر حدی ملیشما ،دانقلا ب د مدا فعینو دډلو جوړ و ل.په وا قعیت کی ټول دهمد غـــه انقلابی و سله وا لی دفا ع‌چی دانقلاب په دفاع اودانقلا ب‌ضد په‌بوره تس نس کولو کی یی پریکړ ی رول‌لو باوه.

له‌بلی خوا دانقلاب پر ګنیز بنسټ دانقلا ب داصا لـــت څرګندو ی دی . ز یارایستو- نکی چی دانقلاب محرکه قو ت دی .انقلاب هم خپل ژ و نـــد په دوی کی‌ګور ی .دا انقــلاب رهبری اود افغا نستا ن دخلك دمو کرا تیك ګو ند چی‌دټولنی دزیارایستو نکو قوتونو سر- غندو ی قوت دی دمتر قـــی اصولو له مخی خلك او پرګنی خپله تکیه ګاه بو لی . دخلکو په قو ت تکیه اود خلکو دقوت تنظیم او په‌یو خط کی‌داصولو او انقلاب په خط کی د انقلاب‌به

دفاع کی درول.دټو لنی ، د او سنیو مشخصو اجتما عی ، اقتصاد ی شرایطو غو ښتنـــه او همدا رنګه دانقلاب دتکا ملی دقانو نمند ی پیژ ندنه ده .په هیواد کی پرا خه‌پلار وطنــــه

ملی جبهه چی دافغا نستان د ملی آزادی ښښو نکی جنبش دتکا مل ډیر عا لی‌تر کیـــب اود انقلا ب دنو ی‌پړ اوانقلابی نتیجه ده . دزیار ایستو نکـــو دحاکمیت او ګټو تمثیـــــل کوی .«دپلر نی وطن ملی‌جبهه دټولنیز و سیاسی سازمانونو پرا خه او پرګنیز سیستم دی چی دملاتیر یی دکار ګرا نــو او بز ګرانو یووا لی دی ، او ټو لی ملی او دموکرا تیکـــی طبقی قشرو نه او ډلی ټو ل وطن پالو نکی ټو لنیز ، ! و مذ هبی قوتونه زمو ږ دو طن انقلا بی افغا نستا ن دګټو په خاطر دهمکار ی له پاره سره یو موټی کوی.»

په دی اساس په ډ یـــــر صرا حت سره ویلی شو چی انقلاب دتکا مل سره پـــــه متنا سب ډو ل دخپل‌ټینګښت لاره هم لټوو ی.په‌آګاها نـــه اود ضرور ت له مخی خپلـــی ریښی دهیواد په کلیو بانډ و. قبیلو،قو مو نو ملیتونو ، او په‌مجموع کی دټولو ز یار ـ ایستو نکو منځته‌ورننبا سی. او په منظم ډو ل هغوی ته په لو مړی قدم کی دژو ند‌او‌مرګ سوا ل مطرح کوی اوبه دو هم قدم کی په نتیجه کی هغو ی خپلی کلکی دفا ع تــــــــه رابو لی.

م ا . م

## فعالیت څه دی؟

ګوند یوه ژوندی خو ځنده پدیده ده ، دا پدی سبب چی فعال او په یون کی دی .

د ګوند د ژوند اوغښتلتیا غوره بنسټ په مجموع کـی دهغه د غړو فعالیت او زیا تی هلی ځلی او په مشخصه‌توګه دهغه دهر غړی څخه عبا رت دی . مګر وګورو چی فعا لیت له څه نه تشکیل شوی او څرنګه کولای شو ددغـــــو مشخصا تو په در ك کو لـو سره هغه په اغیز منه تو ګـه ترسره کړو ؟

له هر څه نه دمخه بایـــد ووایو چی فعالیت « خوځیدل» نه دی، ځکه فعالیت‌په مجموع کی او په مشخصه تو ګه له خپله ځانه رو ښانه او ښکاره هدف او غایه لری، یعنی پـــه فعالیت کی ډیره اساسی خبره دمشخص هدف او غایـــــه تشخیصو ل او در ك کول‌دی.

ددی لپاره چی له یوی خـــوا فعالیت‌لا ډیر اغیز من اودقیق وی او له بلی خوا و کړای‌شو دهغه پیل تشخیص کړو او وڅیړو چی تر کومی اندا زی پرمخ بیول شویدی ، باید د کار دیو پـــلا ن لاندی عمـــل وشی .

په مجمو عی تو ګه پـــــه فعالیت کی اوهم د ګوند ی ساز ما نونو او حتی دګوندی ملګرو په «روتین» او ور ځنی عادی کارو نو کی دکاردپلان اهمیت ، ډیر ستر دی. ځکه دغه خبره له یوی خوا د بی نظمی او ګډو ډی جـــرړی راو باسی او له بلی خـــوا فعالیت ته پیګیره او متداومه بڼه ورکوی .

د ګوند د فیصلو ،مصوبو رهنمو دو نو اونوروډساتیرو په تحقق او عملی کولو کـــی دکار دپلان طرح کول زموږ په فعالیتو نو کی ضروری او حتمی کا ردی او ایجا بوی‌چی فعالیت متمرکز شی .

زمو ږ فعالیت او تیو ریك در ك له زر ګونو مزیو سره پیوند لری ، زموږ فعالیت‌هله اغیز من دی چی دهغه لاربښود تیوری وی او زموږ تیوریـــك درك هغه وخت اغیز من اوژور کیدای شی چی له عمل سره یو ځای وی او دهغی نه لاس ته راغلی تجرِ به بډایه شی .

زموږ د فعالیت تنظیم دکار دویشلو سره په ار تباط کی باید داسی وی چی په‌اصطلاح «کار دکار اهل» ته وسپارل شی . یعنی دا چی تشخیص ور کړل شی چی څوك کـــوم مشخص کار ډیر ژر، سم‌او ښه ترسره کوی .

سعی او هلی‌ځلی، پیګیری او نظم، صبر او حوصلـــــه د فعالیت روح د ی.

ددغو مطالبو په درك کولو سره کولی شو په مجمو ع کی پخپل انقلا بی کار کی اغیزمن واوسو . دګوند دهر غـــړی دهلو ځلو نه ډك او پیګیــــر فعالیت دهغه د پیاوړ تیـــا ضامن دی .

«ن»



(دلومړی مخ پاتی)

## دافغانستان ددموکراتیك جمهوری...

دټاکلو ، آزادی او د محکو د اصلاحاتو له‌تطبیقاتو څخه د پیدا شویو د محکو دمسالو په حل کی د حقوقو برابری اود نوی او سمسور افغا نستان پــه جوړښت کی په وطنپالونکی روحیه‌په عامه چاروکی د هغوی د سیاسی برخی اخیستنی اود هیواد د دفاع په‌لارکی دګډون امکان ورکړ شی .

د افغانستان د موکراتیك جمهوری حکومت له هیواد څخه د بهر افغانانو دمنلو لپاره د تیاری په اعلان سره څرګندوی چی هغوی‌ته به زموږ دګران وطن دسوکالی په خاطر د پتمن‌ژونداو دټولنیز کار د ګټور فعالیت ټول لازم شرایط تامین شی .

حکومت د افغانستان د دموکراتیك جمهوریت د اساسی اصولو له مخـی یوځل بیا تضمینوی چی د کوچیانو، قبایلو او مالدارانو لپاره نه یوازی‌له څرځایونو څخه په عادلانه توګه وړیا استفاده برابریږی بلکی په هیوادکی دهغوی دآزاد حرکت پر حق بانـــدی ټینګار کیږی . د افغانستان حکومت هغه خندونه‌چی په دی وروستیووختونو کی پاکستان ته له افغا نستان څخه‌او

ددی پرعکس دکوچیانو د اوسنیو‌تلو- راتلو په لاره کی پیدا شوی غندی. باید څرګنده‌شی‌هغو منښتوبدلو نونو چی‌په هیواد کی د سر ته رسیدلو په حال‌کی‌دی اوله‌وطن څخه دبهرافغانانو ورځ په ورځ زیاتیدونکی راستنیدلود امپریالیستی او ارتجاعی ټولنو دغوسی سببونه برابر کړی دی .

هغوی غواړی چی د دغه بهیر په لاره‌کی ستونزی پیدا کړی او دهغوی ایجنټان ددی غرض‌لپاره په تروریستی اوله ګواښ نه ډکو فعالیتو نو لاس پوری کوی .

دمثال په توګه له هغو افغانانو څخه چی‌په بهرکی اوسیږی په زور او جبر افغانستان‌ته د صدور لپاره‌اجیران ګوماری .

یوازی د پاکستان په خاوره کی په‌اوسنی وخت کی داجیر وتروریستانو په‌لسګونو پوځی‌اردوځا یونه اودروزنی مرکزونه شته چی امریکایی ، چینایی پاکستانی ، مصری او نور ښوونکی هغوی روزی .

دافغانستان د موکراتیك جمهـــوری حکومت ګاونډیو هیوادو نو ته بلنـــه ورکوی چی افغانی ضد فعالیتونه پای ته‌ورسوی او خپل وطن ته د کوچیانو داوسنی‌حرکت او د افغانانو دستنیدلو په‌لاره کی خنډونه پیدا نکړی ٭ چی البته دغه شان کار به ددغو هیوادواو افغانستان ترمنځ داړیکو له اعادی‌سره هم مرسته وکړی .

دافغانستان دموکراتیك جمهــوری حکومت په دی اعلامیه کی هم په خپل هغه دریځ چی پخوایی د۱۹۸۰ کال‌دمی په څوارلسمه نیټه څرګند کړی‌و یوځل بیاټینګار کوی او چمتو دی چی ددغه دریځ پر بنسټ له‌ګاونډیو هیـــوادو سره د خبرو دمیز تر شاکښینی او پر هغو مسالو خبری وکړی چی په سیمه کی دکړکیچو نو د پیدا کیدو سبب کیږی .

د افغانستان دموکراتیك جمهوری حکومت داړلری چی‌ددغی سیمی‌د هیوادو تر منځ په رښتینی توګه دښه ګاو - نډیتوب د اړیکو د ټینګیدلو له‌لاری‌د غیر لازمو خنډونو لری کول په‌سیمه اوټوله نړی کی د ګټوسولی او امنیت څواب وایی .

(ب)

(دلومړی مخ پاتی)

## دا. د. ج دبهرنیو چارو دوزارت...

څینی ستونزی‌پیداشو یدی‌هغه بانډونه چی‌د امریکا د امپریا لیزم او دپیکنګ دهژمونیزم له خوا تحویل او وسله‌وال کیږی او د څینوګاونډیو هیواد واوپه عمده توګه د پاکستان په خاوره کـی پناه ورکړ شوی او له هغه ځای څخه دافغانستان په کورنیو چارو کی په تیری کوونکو عملونو او د لاس وهنی په‌نورو بڼو لاس پوری کوی.

دافغانستان دیمو کراتیك جمهوری حکومت د پاکستان او ایران حکومتونو ته‌پیشنهاد وکړ چی دغه پرابلمونه د سوله ییزو او دوه اړخیزو خبـرو له لاری حل شی. د افغانستان دشاوخوا دحالاتو د سیاسی حل او له پاکستان اوایران سره د اړیکود اعادی پروګرام د۱۹۸۰ د می دڅوار لسمی نیټی د افغانستان دديمو کراتیك جمهو ریت په اعلامیه کی په پراخه او هراړخیزه توګه ځای کړی شویدی .

په داسی حال کی چی د افغانستان له‌کورنیو انکشافاتو څخه د سیمی او نړی سولی او امنیت ته هیڅ ډول‌خطر نه‌پیدا کیږی دا افغانستان دی چه‌لـه بهر څخه له تیری کوونکو فعالیتونواو دلاس وهنی له نورو بڼو سره مخامخ شویدی اوله همدی امله ده چی د شوروی اتحاد محدود پوځی قطعـــات افغانستان ته ،رابلل شویدی چی د افغانستان له خلکو او قهر مـــان‌اردو سره د بهرنی تیری په دفع کولوکی مرسته وکړی.

دافغانستان‌د دیموکراتیك جمهوریت او شوروی اتحاد ګډه وینا چی د ۱۹۸۰ داکتوبر په شپاړسمه نیټه د افغـا- نستان دګوندی او دولتی لوړ رتبـــه هیات دسفر په وخت کی په مسکوکی لاس لیك شوه اعلاموی .

ترګومه ځایه چی د افغا نستان د دیموکراتیك جمهوریت په خاوره کی‌د شوروی اتحاد د ځای پرځای شویـــو محدود وپوځی قطعاتو پوری اړه لری‌د حکومت په غوښتنه او د ۱۹۷۸ کال د افغان، شوروی له ترون اود ملګروملتو له‌منشور سره سم لیږل‌شویدی دهغوی دستنید و د نیتی پوښتنه کیدای‌شی دیوه سیا سی حل په چوکاټ کی اونه دافغانستان ددیمو کراتیك جمهوریت پرخلاف دتیریوله پوره پای ته رسیدو اود افغانستان د خلکو او حکومت‌پر خلاف له بهر څخه دورانکارو فعالیتونو دنه‌تکرار له مربوطو تضمیناتو څـــخه مخکی مطرح کیدای شی .

هغه مثبت بدلونو نه چی دثورانقلاب له‌نوی پړاووروسته پیدا شویدی اوس په‌زیاتیدونکی توګه زموږ د هیواد د زیار ایستونکو د پراخو پرګنو له‌خوا درك‌او ملاتړ یی کیږی . او دغه کار دخلکو د قدرت دورځ په ورځ ټینګښت داقتصادی پر مختیا دځمکی د ریفورم دنظم او قانون حاکمیت او په هیواد کی دیو کل په توګه د حالاتو د اعادی څرګندوی دی .

یوه بله مهمه پیښه د ملی او هیواد پالو ځواکونو جرګه ده چی پـــه دی وروستیو وختو کی په‌کابل کی دپراخه پلاروطنی ملی جبهی د جوړیدو لپاره‌د لاری داوارو لو لپاره وشوه، هغه جبهه چی د ټولو طبقو، قشرونو او افغانی ټولنی د ډلو قوتونه به یوله بل سره یو موټی کړی .

له دی امله د دغو حقایقو په پام کی نیولو سره هر بیطرفه کتونکی تـه څرګنده ده چی د اسلامی جرګی د سازمان دغونډی‌په خبروکی په اصطلاح دافغانستان د مسالی د تحمیل لپاره هلی ځلی د اسلامی هیوادو له مهمو مسالو څخه د دغی غونډی دپام لـــه اړولو څخه پرته بل هدف نه‌لری ددغه شان زیانمن کوونکوهلو ځلو دمخنیوی لپاره پام وکړی او زیار وباسی چـی جرګه خپل وخت هغو مسالو ته وقف نکړی چی‌داسلامی نړی یووالی ته ضرر رسوی چی‌په دی ډول د دښمنانو پر- خلاف پخپله ګډه مبارزه کی‌د هغوی بریالیتوب تامین شی .

خود اسلامی جرګی په سازمان کی دافغا نستان د دیمو کراتیك جمهوریت دغړیتوب د خنډولو دمربوط تصمیم په باب باید ووایو چی دغه تصمیم‌بیخی غیر عادلانه دی او هیڅ دلیل نه لری‌له دی امله د افغانستان د دیمو کراتیك جمهوریت دبهرنیو چارو وزارت پهواك سره ټینګار کوی چی هر ډول هغـــه فیصله او تصمیم چی په دی غونډه کی دافغانستان دنمایندګی‌د هیات په غیاب کی‌ونیول شی دافغانستان دیمو کراتیك جمهوریت ځان په هغه باندی مقید نه بولی او ترګومه ځایه چی زموږ پـــه هیواد پوری اړه پیدا کوی قانونـــی اعتبار به ونه لری .

## دخلکو لیکونه

**دحقیقت انقلاب ثور محترم مسؤول مدیر !**

څرنګه چی دافغانستا ن ددیمو کرا تیك جمهـوری دو لت پالیسی د ټو لنـــی سو کالی او نیکمر غی اوزموږ څوړید لو هیواد والو اکثریت ته خدمت دی ، نو ددی اصل په پیروی غواړم څو کــر ښی ستاسی په خدمت و لیکم او وړاندی یی کړم .

یوه له ستونزو څخه چی د کابل ښار په بیلا بیلوبرخو کی ور ته اړه شته دپــوره تیلفو نونو نشتوا لی دی‌چی البته مو جودیت یی په زیا تو سیمو کی دلیری وا لی‌له‌پلوه او په څینو نورو وختونو کی ضروری لیدل کیږی ، اودا هغه‌ستونزه ده چی،چهلستون ته نژدی دقلعه غیبی اوسیدـ ونکی ورسره په خاصه توګه مخا مخ دی .

نو مو ضوع مو په‌درناوی سره ولیکله هیله ده چـــی دا ستو نز ه په ورځپا ڼه کی دخپریدو له لاری ذ مخابراتو وزار ت مسؤ لو مقا ماتو ته ورسوی چی د لاز متیااوامکان په صورت کی د تیلفون یــوه غرفه د چهلستو ن ما ښی لـــه سوچبورد څخه برابره او د هغی په نصبو لو سره د قلعه غیبی د سیمی داوسیدو نکو ستونزی رفع کړی .ستا سی دهمکاری په هیله .

خوښی او نیکمرغه اوسی

**«م،ن، لهقلعه غیبی څخه»**

# بهرني خبرونه: واقعيتونه، پېښې

## د «سيا» دبهرنيو چارو وزارت

په اروپا کې دناټو دپوځ پخواني قوماندان جنرال الکساندر هيګ درونالد ريګان په نوي حکومت کې دبهرنيو چارو دوزير په توګه ټاکل شوی دی. نوموړي دکانګرس دبهرنيو روابطو په کميټه کې دامريکا دمتحده ايالاتو دبهرني سياست په باره کې داسې ووېل، چې بايد د شمالي اتلانتيک - ناټو تړون زيات غښتلی شي اودغه کار زيات پوځي لګښت غواړي.

جنرال هيګ په حقيقت کې نه يوازې دسوسياليستي کمپ دهيوادو پرضد، بلکې دنړۍ دودې په حال کې ټولو هيوادونو پر ضد دلويديځو قدرتونو او امريکا دګډو اقداماتو غوښتونکی دی.

دامريکا د (ان.بي.سي) راديو - تلويزيون مبصر دغه ټکی ته ګوته ونيوله، چې جنرال هيګ د بهرني قهرجن او غښتلي سياست ملاتړ کړی، پوځي قواو دهغو له جملې څخه دذروي وسلې په کار اچول لازمي او ضروري ګڼي، سربېره له دې هم نوموړي څرګنده کړه، چې ذروي جګړه دځله ييزې وژنې سبب کيږي.

جنرال هيګ په چيلي کې د«سيا» په هغو ورانوونکو او پټو فعاليتونو کې چې په نتيجه کې په ۱۹۷۳ کال کې دسلوادورآلندي قانوني حکومت نسکورشو او دهغه په ځای فاشيستي رژيم مينځ ته راغی، دهغه دنقش او همدارنګه «واترګيت په رسوايي» کې دنوموړي درول په باره کې څرګندونې وکړې.

جنرال هيګ په دغه وخت کې دملي امنيت شورا د مهم غړي په توګه اوورپسې دسپينې ماڼۍ ددفتردرئيس په توګه دده سرته رسوله، نوموړي څرګنده کړه، چې په چيلي کې دامريکا دمتحده ايالاتو د «سيا» دجاسوسۍ سازمان تر رهبرۍ لاندې په ورانوونکو عملياتو کې يې ونډه درلوده.

«واشنګټن پوسټ» ورځپاڼه په دغه ارتباط ليکي، چې دچيلي پر خلاف په پټو عملياتو کې دجنرال هيګ ګډون دسنا دڅانګړې کميټې په هغو اسنادو کې انعکاس موندلی چې دبهرنيو هيوادو دمشرانو په خلاف يې د «سيا» د جاسوسۍ سرويس د فعاليتونو او دسيسو لپاره تر سره شوي دي.

دا لاندې شخصيتونه درونالدريګان دحکومت دبهرنيو چارو وزارت په تشکيلاتو کې غړي دي:

۱- په بلګراد کې دامريکا دمتحده ايالاتو سفير لارنس ايګل برګ، داروپا په چارو کې دبهرنيو چارو وزير دمرستيال په توګه.

۲- په اسرائيلو کې دامريکا دمتحده ايالاتو سفير سام لوئيس د آسيا د جنوب ختيځ او منځني ختيځ په چارو کې دبهرنيو چارو وزارت دمرستيال په توګه.

۳- دلرې ختيځ په چارو کې دامريکا د«سيا» دجاسوسۍ دسازمان متخصص جان هولبريج دبهرنيو چارو وزارت کې دآسيا د ختيځ په چارو کې د مرستيال په توګه ټاکل شوی دی.

تبصره

# وسله، دواشنګټن په لاس کې دکړکيچ کيلي

نړيوال امپرياليزم، په سرکې يې دامريکا متحده ايالاتو دجيمي کارټر دجمهوري رياست په موده کې دشمالي اتلانتيک تيرۍ کوونکي تړون دغړيو هيوادو اوپه نړيواله سويه دوسلو دزور ازمويلو ته متې را نغښتې دي.

چې له دغې جملې څخه د«کروز» توغنديو، نويوجنګي الوتکو، اټومي او بټلونو، ډول ډول ټانکونو دتوليد، دزهر جنو نقبونو او بمبونو په شان دکيمياوي وسلو دتوليد، چې په عصبي سيستم باندې اغيزه کوي، د شيلز توپونو، هوايي بمونودوروستي سيستم وسلودپرمختيااوجوړولو له دغې جملې څخه دلايزر وړانګې اوکازميک دنورو يادونه کولای شو.

دامريکا دمتحدو ايالاتو دجګړې اوربلونکي امپرياليزم په بيلابيلو سيمو کې مزدورو رژيمونو ته په پرله پسې او زياتو وسلو په برابرولو او دنړۍ په ځوولو سره حالات لاپسې خرابوي اودنړۍ په لانجمنو سيمو کې دنويو کړکيچونو دپيدا کيدو اصلي عامل دی.

دامريکا دمتحدو ايالاتو امپرياليزم دپوليسي رژيمونو او وګړنيو ضد رژيمونو په جوړولواودنړۍ په بيلابيلو سيمو کې دوسلو دزور ازمويلو په زياتولو سره هلې ځلې کوي چې له يوې خوا دنړۍ په بيلا بيلو سيمو کې خپل ستراتيژيک هدفونه وساتي اوله بلې خوا دملي آزادۍ بخښونکي غورځنګونو دزياتيدو په لاره کې خنډ شي.

دخپرو شويو رپوټونو له مخې دامريکا ددفاع وزارت تر ټولو زيات دمنځني ختيځ هيوادوته زياتې مرګوني امريکايي وسلې ورکوي. لکه چې دامريکا متحدو ايالاتو په وروستيو لسو کلونوکې د (۱۳۹۰۰) مليونو ډالرو په ارزښت وسلې اوتجهيزات داسرائيلو صهيونستي رژيم ته ورکړي دي.

دخاين سادات رژيم دپنټاګون يو بل ستر مشتري بلل کيږي. دمصر درژيم په ۱۹۸۰ کال کې د(۲۴۰۰) مليونو ډالرو په ارزښت دامريکا له متحدو ايالاتو څخه وسله اخيستې ده چې کيدای شي هغه دکمپ ديويد په عربي ضد معامله کې دسادات دخاين رول په بدل کې سوغات وبلل شو.

په وروستيو وختونو کې دسعودي عربستان رژيم هم دپنټاګون دوسلې دپيرودونکو په ډله کې ستر مقام نيولی دی.

داسيا په جنوب ختيځ کې د سپينې ماڼۍ ستراتيژيستان هلې ځلې کوي داسيا دجنوب ختيځې سيمې د ټولنې دغړيو هيوادوله پاره دوسلو دبرابرولو له لارې کړکيچونه لاپسې زيات کړي. په تير يوه کال کې د(۲۵۰۰) مليونو ډالرو په ارزښت ډول ډول وسلې دمرګ دمعاملې کوونکو له خوا دغو هيوادو ته استول شويدي.

دغه راز دجاپان درژيم او دجنوبي کوريا ديکتاتوري رژيم ته دوسلو صادرول په زياته اندازه دوام لري. واشنګټن دناټو تيرۍ کوونکي تړون په غړيو باندې دوسلو پلورل، د ديتانت په وړاندې او داروپا په وچه کې دوسلو دزور ازمويلو دګڼوالي دمخنيوي په وړاندې دورانکاريو دپيدا کولو په برخه کې دکړکيچ دزيږيدو په توګه استعمالوي.

دامريکا دمتحدو ايالاتو امپرياليزم په ۱۹۸۰ کال کې دخه دپاسه (۲۹۰۰) مليونو ډالروپه ارزښت وسلې اوپوځي سازو سامان انګلستان ته ليږلي دي. دامريکا يې وسلوجوړونکو په تيرکال کې په اروپايي هيوادواود «دريمې نړۍ» په هيوادو باندې دوسلو دپلور لوله لاري کابو (۱۵۳۰۰) مليونه ډالره ترلاسه کړيدي. چې په ۱۹۷۹ کال کې دوسلو دپلورلو له درکه (۲۳۰۰) مليونه زيات دي.

دسولې او کړکيچ دکولو سياست چې دټولې نړۍ دزيارايستونکو اساسي او پخواني غوښتنه ده په اقتصادي او ټولنيز لحاظ دورانکارۍ او جګړې غوښتونکي امپرياليزم، نه غوښتيږي، له همدې امله هلې ځلې کوي که چيرې وکولای شي خپل نړيوال قدرت دختمې نيستۍ کندې ته له غورځيد و څخه بچ کړي. نړيوال امپرياليزم په بين‌المللي سويه دوسلودزورازمويلو له زياتوالي په زياته اندازه دغه هدفونه لري.

دوسلوله زورازمويلوڅخه دامپرياليزم لومړی هدف دهغه تاوده بازار ساتل دي چې دمليارډونو په اندازه دمرګ دسوداګرو له پاره پريمانه ګټه لري اوهغوی هيڅکله داقصد نلري چې له خپلې دغې زياتې ګټې څخه تيرشي.

دوسلو دزوراز مويلو له زياتوالي څخه دامپرياليزم بل مقصد دادی چې دسوسياليستي ټولنې هيوادونه دخپل خان ددفاع له پاره مجبورشي دهغو پيسو يوه برخه چې بايد دټولنې په ودانولو اود زيار کښو دژوندانه په ښه والي باندې ولګيږي دخپلو وحشي او ځناور صفتو دښمنانو په مقابل کې ولګوي.

دريم مقصد دادی چې امپرياليزم داسې فکر کوي چې ګواکې په پانګه‌واله نړۍ اوپه «دريمه نړۍ» کې دپوځي قدرت په زور ډير ښه کولی شي حالت دخپل بشري ضد، استعمار ګرانه او استعمارګرانه سياست په ګټه وساتي اودملي آزادۍ بخښونکوغورځنګونودبري دلارې خنډ شي.

(و، م)

پرخبرباندې يادونه

# نوې چاوديدونکې مواد !؟

داسې پيښيږي چې اشخاص دخپلو عملونو په تاريخ کې يوپاييدونکې اغيز پريږدي. له دغې جملې څخه يوهم انګليسي ګي‌فاوکس دی. ده د ۱۶۰۵ کال دنوامبر په ۵ نيټه دويست منسترلندن تر نامتو ماڼۍ لاندې باروت کينښودل، که چيرې دغه چاودنه شوې وای، په هغې سره کيدی شو چې لومړی پاچا جيمس چې ټاکل شوی وه په همغه ورځ دپارلمان نوې دوره پرانيزي لوپه شوی وای.

خو کار بله بڼه غوره کړه. دغه توطئه کشف شوه اوګي فاوکس په دار وځيزول شو. له هغې ورځې راهيسې تر اوسه پورې انګلستان دغه ورځ د اورونو په بلولو په واټونو کې په نخيدوسره نمانځي.

خو دسږني کال په ۵ نيټه دخوښۍ او خوشحالۍ له پاره کوم ځای نه و. اوس دانګلستان دخلکوزياترو ګټوته ديوې بلې توطئې په وسيله چې طرحه يې د تاجر په مشرۍ دانګلستان (محافظه کار) حکومت جوړه کړې ګواښ کيږي. له دغې توطئې سره نوې چاوديدونکې مواد شته چې «بيکاري» نوميږي.

په کارټون کې تاسې دماڼۍ ساتونکې وينې چې ددو مليونو وزګارو کسانو له چاودنې څخه ويريږي او په ويره کې تر شونډو لاندې وايي: «زه باورلرم چې دغه موادبه يوه ورځ سخته چاودنه وکړي اوهيڅوک به دهغې مخه ونشي نيولی».

د «قله» ژباړه

# دچيلي فاشيستي رژيم، توره تيره کوي

نړيوال امپرياليسم دغه دملي آزادۍ بښونکو غورځنګونو وحشي دښمن او دانساني ټولنو دودې او پرمختګ ستر مانع، د «ژندارم جوړولو» د سياست په تعقيبولو سره ورځ په ورځ دنړۍ په مختلفو ګوټونو کې د حالاتو بې ثباتي اوکړکيچ زياتوي. دامريکا دمتحده ايالاتو امپرياليسم دټولې نړۍ اعلام دچيلي «حياتي ساحې» په توګه، او خپلو لاس پوڅو او فاشيستي هيوادونو ته د آخري سيستم وسلو برابرول او ليږل او بدغو هيوادونو کې دجنګي وسلو د زيرمو رامنځته کول دنړۍ په مختلفو سيمو کې دکړکيچونو زياتوالي اود بحرانا تو درا منځته کولو اصلي عامل دی.

په چيلي کې دپنوچت خونړي فاشيستي رژيم، چې په وروستيو کلونو کې يې دامريکا دامپرياليزم دپوځي «صنعتي کمپلکس» په مرستو سره په وسله خان پړ سولی دی اود «سيا» ديوې خونړۍ کودتا په جريان کې د چيلي دخلکو د زرګونو زامنودوينو تويولو سره ددغه هيواد په زيار کښانو واکمن شو بدې وروستيو وختونو کې يې ديرې زړو بې دامريکا د متحده ايالاتو، چين، اسرائيل، انګلستان، لويديځ المان او فرانسې څخه دجګړې دآخري سيستم دوسلو په رانيولو سره دوسلې دنړيوالو انحصاراتو جيبونو ته ورا چولي دي دمثال په توګه د تير کال د دسامبر په مياشت کې معلومه شوه چې په لويديځ المان کې دوه اوبتلونه چې د جوړيدو په حال کې دي د چيلي د فاشيستي رژيم فرمايش دي چې دهغه ټو له اندازه (۲۰۰ـ۱۷۰) ډالره ده.

په چيلي کې دپنوچت د فاشيستي خونړي رژيم په فرانسه کې جوړې شوې بم اچوونکې يو سيل الوتکې په خپلې پوځي زيرمو ودې زياتې کړې. له فرانسې څخه ددغه هيواد دوسلو داخيستلو نوې تړون د ۱۶ بم اچوونکو الوتکو څخه عبارت دی چې څلور الوتکې يې دچيلي خونړي فاشيستي رژيم ته ور کړ شويدي.

په چيلي کې د(پنوچت) جوړ شوي رژيم په وروستيو کلونو کې دلويديځو پانګوالو هيوادونو دوسلو جوړولو دکمپنيو له خوا په بې ساري توګه په وسله سمبال شوي دي. د چيلي د يکتا توري رژيم په کال کې څه ناڅه په سلو کې ۴۳ د هيواد د ټولې بودجې څخه په پوځي چارو لګوي چې ددغو پوځي زياتو او افراطي ځانګړنو په نتيجه کې اقتصادي زيات بحرانونه را منځته کړيدي او د چيلي زيات کسان يې په لوږه، بيکارۍ، بې وزلۍ او دنورو ټولنيزو مصيبتونو او ستونزو سره لاس په ګريوان کړيدي.

دپنوچت دخونړي رژيم پوځي زيات لګښتونه د نړۍ پدغه سيمه کې دامريکادمتحده ايالاتو دوسله وال پاليسۍ يوه برخه ده. دواشنګټن واکمنې ټولنې په نظرکې لري ترڅو په لاتين امريکا کې د فاشيستي او ارتجاعي رژيمو نو په جوړولو سره په سيمه کې قوي او لاس په نامه پلويان په خپل واک کې ولري ترڅو وکولای شي چې په «بند» او د«بې‌دسر له دردې» دملي آزادۍ بښونکو غورځنګونو د ټکولو دندې سر ته ورسوي.

دا دولې هيوادونه په واقعيت کې دامريکا دمتحده ايالاتو امپرياليزم ترسانتنې لاندې دنړۍ پدې برخه کې دير غل ګرو بلاکونو دجوړولو ادې دي.

«و»

# دواشنګټن ـ پيکنګ ـ توکيو مثلث په آسيا کې دسولې له پاره ګواښ

د آسيا دجنوب ختيځ دملتونو دټولنې غړيو هيوادو د «اندونيزيا، فليپين، ماليزيا، تايلند او سنګا پور ته» دجاپان د صدر اعظم زنکو سوزو کې سفر د جاپان د زيا کارانه بهرني سياست اصلي ماهيت څرګند کړ او پدغه باره کې يې دجاپان دواکمنو ټولنو په ټولو اپلټو اودروا غو باندې د بطلان کرښه را کښله چې ګوا کې دغه هيواد له بهرنيو هيوادو سره په خپلو اړيکو کې د څو اړخيزه ديپلوما سۍ دکتورين تعقيبوي او دغه کلک او رو ښنانه حقيقت يې ښوا ګه کړ چې د جاپان د بهرني سياست بنسټ دواشنګټن، توکيو د پوځي، سياسي يو والي په بنياد ولاړ دی.

دجاپان او دامريکا دمتحدو ايالاتو د سياسي او پوځي يو والي هدف چې د دوا ړو هيوادو دپانګه وال او انحصاراتو له حريصانه ګټو سره سم دی. په آسيا کې دامپرياليزم دتسلط دايمي تامين او پداسې شرايطو کې دجاپان دپانګه وال انحصاراتوځای بر خای کول دي چې په بين‌المللي سويه د طبقاتي قواو انډول د سولې او سوسياليزم د خواکونو په ګټه اووړي په ورځ زيا تيدونکې تو ګه د جګړې او ملتونا ريزم دخوا ـ کونو پنځه زيان دی. د غه يو والي چې دجاپان د ګاونډيو او بحرالکاهل دهيوادو د ثبات اوامنيت د ګواښ منشاء بلله کيږي، زياتره په آسيا کې ملي آزادۍ بخښونکو غور ځنګو او په جا پان کې دامريکا د متحدو ايالاتو دامپريا ليزم ضد ديموکراتيک ضد اوملېتاريزم ضدقوي غور ځنګ ته ګوزار ور کول دي.

ددواړو هيوادو دپوځي او سياسي يو والي دپرا خوابعا دو د بيا نولو له پاره همدو مره بس ده چې د په اصطلاح دامريکا، جاپان د «امنيتي» تړون په اساس دامريکا متحدو ايالاتو دجاپان په خاوره کې څه دپاسه ۱۰۰ پوځي اډې جوړې کړيدي.

جاپان دامريکا دمتحده ايالاتو په نړيوا له ستراتيژۍ کې فعال رول لوبوي. په اصطلاح آسيايي مسئلو کې دخپلو ذمه واريو په سر ته رسو لو کې دجاپان ونډه زيا ته شويده. جاپان پدې ترڅ کې چې د جاپاني مالي انحصاري ډلو دګټو په پيروۍ د بانګي اچو لو له پاره په «ډيرې سيما» سره ديوې ښې سيمې په نامه د آسيا دجنوب ختيځو ملتونو دټولنې په غړيو هيوادو کې داقتصادي پراختيا د زياتوالي لپاره هڅه کوي. پا ملر نه وکړي.

ددغې ټولنې په غړيو هيوادو کې د جاپان دپانګو اچولوحجم. له دوو تريليونو څخه اوړي. او دپر مختللو پانګوال لو هيوادو په ډله کې لومړی مقام ګټلی له ګټو څخه دلک بازار. داو مو موا دو پيرو دلو او ديخو موادو پلورلو ته پا ملر نه کوي، او له سياسي نظره هڅه کوي چې د آسيا د جنوب ختيځو ملتونو د ټولنې پر غړيو هيوادو باندې يو ډول «قيمو ميت» ټينګ کړي.

د جاپان صدراعظم زنکو سوزو کې په اصطلاح د «کمپو چيا دپرابلم» په ګډون چې دامپريا ليزم له خوا اختراع شوې مسئله ده او د سيمې دامنيت او دپوځي لګښت او پيسو د زيا توا لي په باب اودجا پان د پلان په باره کې چې داندو نيز يا، فلپاين، تايلند، ماليز يا او دسنګاپور له مشرانو سره خبرې کوي، ددې ښکارندوی ده چې جا پان ددمو کراتيکي کمپو چيا دزيار ايستو نکو په خلاف بې شرمه مبارزه کې دامپريا دامپريا ليزم اودچين دهژ مونيزم په لاس کې ديوې وسيلې په تو ګه خپله ونډه ادا کوي.

بايد ووايو، چې دپانګوالي نړۍ ښاغلي سياست مداران دي د «کمپو چيا دپرابلم» دحل کولو په باره کې چې اصلا خا رجي وجود نه لري ځان ته تکليف نه ورکوي. دغه «پرابلم» دوه کاله و ړاندې د آزادۍ، خپلواکۍ او انقلابي کمپو چيا د زيار ايستو نکو له خوا، دپولپوت، ينګ ـ ساري، دمائو يستي جنا يت کوونکي رژيم په ړنګو او نسکورو لو سره دتل لپاره حل شويدي، ددغه «پرابلم» په باره کې د آوازو اچو ل دواشنګټن او پيکنګ کار دی.

په‌يو وخت کې د آسيا دجنوب ختيځو ملتو نودټولنې د غړيو هيوا دونو څخه د زنکو سوزو کې ليدنه او د سنګاپور څخه دامريکا ددمو- کرات ګوند داستازي او د کانګرس دپوځي خد متو نو دکميټې رئيس په مشرۍ دامريکا دمتحده ايا لا تو دکانګرس صلا حيت لرونکي هيأت کتنه او دسنګا پور د صدر اعظم با لي کوان اود دفاع و زير يون جونګ او د بهرنيو چارو وزير سره دنوموړي هيأت خبرې اترې له يوې خوا څرګندوي چې امريکا او جاپان هڅه کوي، چې د آسيا د جنوب ختيځو ملتونو د ټولنې په غړيو هيوادونو زور واچوي، چې دامريکا، جاپان او چين سره پوځي او سياسي مرستې پراخه او ټينګې کړي، او له بلې خوا ددغو دواړوهيوادونو دپوځي او سياسي ستراتيژۍ ديو والي نښه نښانه ده.

دواشګتن، پيکنګ، توکيو محور. دنړيوالې دوهمې جګړې په وخت کې دفاشيزم محور ته ډيرو رته دی، چې د آسيا د هيوادونو او نړۍ دسولې ټينګتيا اوامنيت ته دخطر نا ک ګواښ په منبع بدل شوی دی. يوازې دامپرياليستي ضد درې ځواکونه کولای شي، چې امپرياليزم، هژمونيزم او مليتاريزم په ښنو ښکيل کړي او په آسيا او نړۍ کې د دوا مداري سولې تضمين وکړي.

«هشام»

# دخلکو سره مرکه

## گوند څه دی؟

زموږ وطنوا لو له ډیری مودی را هیسی د گوند نوم اورید لی او له بیلا بیلو گوندونو سره یی سرو کار لرلی دی.

په گوند کی یو شمیر کسان چی فکر او نظر یی یو شان وی یعنی چی گډی گټی ولری، اودهغومقصدونو له پاره چی لری یی هلی ځلی او مبارزه کوی راټو لیږی.

په گوند کی دیوی طبقی یا قشرو نو لکه کارگر یا پانگه والو هو ښبیار کسان چی په یو څه پوهیږی، یو ځای کیږی. دغه کسان خپلی طبقی ته په مبارزه کی لار ښوونه کوی.

ډول ډول گوندونه شته.

داسی گوندو نه شته، چی دسترو پانگوا لو او ځمکوالو ملاتړ کوی. دغه گوندو نه هغه گوندونه دی چی د هغو کسانو ملاتړ او ننگه کوی، چی ظلم کوی، او دنورو په حق باندی خیټه اچوی.

دغه گوندونه ؛ نشی کولای د زیار کښو گټی په نظر کی ونیسی، ځکه چی نه یی غواړی.

پدغو گوندونو کی دا سی کسان یو ځای کیږی چی هلی ځلی کوی دهغو حکو متو نو ننگه و کړی چی یوازی او یوازی د پانگوا لو او هغو کسانو د گټی په فکر کی وی چی دنورو دکار محصو ل لوټوی، او په خپله هیڅ کار نه کوی.

کله نا کله پا نگوا ل دخلکو دتیر ایستلو له پاره دا سی گوندونه جوړ وی چی په حقیقت کی د زیار کښوخلکو پرخلاف وی.

یوازی په هغو باندی دخلکو دگټو ددفاع نوم ږدی چی دغه گوند د کومو نیمگړو اصلاحاتو پر ته سم کارنه کوی.

دغه راز د ژیا تی گټی دتر لاسه کولو له پاره چی دخلکو د دښمنانو ترمنځ سیالی ده، داسی گوندونه هم جوړیږی چی دیو بل پرخلاف دی، خو دسترو پانگوا لو د گټو دفاع کوی.

خو هغه گوند چی هدف یی په ریښتیا دکار گرانو او زیار کښو د گټو تر لاسه کول دی دکار گرانو گوندی دی، دغه گوند یو داسی سیاسی ساز مان دی چی دکارگرانو او ټولو زیار کښو ډروا گټو ننگه کوی، دغه گوند دزیار کښو طبقا تی مبارزی ته لار ښوونه کوی.

دغه گوند کو لای شی په خپل وخت بیلا بیلی مبارزی عملی کړی. ستاسی گوند، دافغانستان د خلکو دیموکراتیک گوند دغه ډو ل گو ند دی.

ستاسی دگوند هدف، د ټو لو کار گرانو، بز گرانو، کسبگرو او نورو هغو کسانو آرا می او سو کا لی ده چی زیار گالی، کار کوی.

ستاسی گوند، دپلر نی وطن ملی جبهه جوړوی چی زموږ دو طن ټول زیار کښا ن یکی برخه اخلی.

دافغانستان د خلکو دیموکراتیک گوند له هغه وخت څخه چی جوړ شویدی دو طن دنیکمر غی، آرا می او پر مختگ په مقصد هیڅ ډو ل هلی ځلی ندی سپمو لی.

پدغه گوند کی ستا سو پتمنو خلکو بچیان راټو ل شویدی چی په ډیرو بدوحالاتو کی یی دانه ده هیره کړی چی څه هدف لری.

دوی هغه کسان دی چی ستاسی په شان یی په لوږه او تنده کی ژوند کړیدی.

داستاسی بچیا ن دی چی د علاج د لاری لټه یی و کړه او وی نه غوښتل تردی زیات په تاسی باندی څوك ظلم وکړی او دوی هغه کسان دی، چی خپل وطن پری ډیر گرا ن دی. ا ودوی په انسانیت باندی پوهید لی دی. که چیری یی ددغه گوند بچیان جیلو نو ته ټیل وهل، وی زورول له ښوونځیو، پوهنځیو او کارونو څخه یی بی بر خی کړل. شهیدان یی کړل، خو له خپلی لاری څخه وا نه وښتل.

دهمدغه گوند په رهبر ی دجدی د شپږمی نیټی بد لون چی وطن او گوند ته خا ین امین اودهغه جنایتکار اوسړی وژونکی باند یی له مینځه یوړ، بریا لی شو. اودایو، نوی پړاو دی. تاسو و لید ل چی د دغه بدلون په بر کت هم انقلاب وژ غورل شو او هم ستاسی وطن.

په خپل گوند باندی راټول شی اود تیر وخت په شان باور ولری هغه لاره چی ستاسی گوند غوره کړی د خلکو له هیلو پر ته بله لاره نده.

تاسی به وو ینی چی دخپل گوند په رهبری دافغانستان خلك هغه ټولنه جوړوی چی هیله یی در لوده.

( آروین )

# دخرمنی اود آهوبوټ جوړولو دفابریکی کارگران پیشنهادونه لری

دخرمنو او دآهودبوټو جوړولو فابریکی په (۱۳٤۰) کال کی دخوارلسو میلیونو افغانیو په پانگه پداسی حال کی چی دچرمگری او بوټو جوړولو فعالیتونه دهیواد په ځینو بر خو کی په پراگنده ډول او محدود و شرایطو کی روان وو دسویسی (ویدمرپاگانی کمپنی) په مرسته په کار پیل وکړ چی په آلمانی او ایتالوی عصر ی ماشین آلاتو باندی سمبال ده.

دخرمنو اودآهوبوټ جوړولوفابریکی پدغه موده کی نه یواځی په ټول افغانستان کی بلکی دسیمی او بین-المللی زیاتو بازارونو کی یی شهرت پیداکړی او دهرکال په تیریدو سره یی دصنعتی او صادراتی خدماتو دپراختیا او ودی په لاره کی نوی گامونه پورته کړیدی. پدغه فابریکه کی اوس (۳۹۵) تنه کارگران په فنی مختلفو سوبو اویوتن المانی متخصص په کار بوخت دی. دآهوبوټو جوړولو فابریکه د(۱۹۵) ماشینونوپه درلودلو سره دکارپه یوه ټایم کی د (۹۰۰) جوړو بوټونو دتولید فعلی ظرفیت لری. که څه هم مخکی دکار په یوه ټایم کی یی تولیدی ظرفیت له یوزرو څخه تر یو زروپنځه سوه جوړوبوټونو پوری وو خواوس دموادو دکموالی له کبله دغه شمیر راټیټ شویدی.

په دغه فابریکه کی سر بیره دبوټو جوړولو پر ماشین آلاتو یوځانگړی ماشین دوبښته لرونکو خرمنو لپاره سته چی دوبښته لرونکو خرمنو څخه په ډیره ښه او غوره توگه پوستینچی او گالی تولیدوی چی دهغه تو لیدی خرمنی دبړاس په وسیله پریول گیږی چی هیڅ غوړ اوبوی نه لری. له ویلو دی پاتی نه وی چی پدی فابریکه کی ټول کارگران دکارگرانو د صنعتی اتحادیی غړیتوب لری اوپدیوروستیو وختونو کی یو استهلاکی کوپراتیف هغوی ته جوړ شویدی.

دموضوع په ارتباط دآهو د بوټ جوړولو فابریکی ځانگوته ورننوزم تر څو له کارگرانو سره له نیږ دی وغږیږم- کله چی فابریکی ته ورننوزم ټول پخپلو ټاکلو کارونو باندی بوخت وینم ددوی دهری خیری څخه، قوت، پیاوړتوب اودکاراو له هیواد سره مینه په ډاگه کیږی.

دکارگر عبدالرحمن سره په خبرو پیل کوم هغه وایی: له یوولسو کلونو راپدیخوا له دغه قالب کاری څخه پیسی لاسته راوړم اودچاخبره دشپی اوورځی گوزاره پری کوم.

خوری باور وکړه چی کلونه کلونه می پدی چورت واهه چی یوه ورځ به هم زموږ دبی وزلو کارگرانو ژوند ښه شی خو دخدای شکر دی چی ډیر ژر ټولو هیلوته ورنیږدی شو م هغه هیله چی ورځی، میاشتی اوآن کلونه په هغه کی لاهووم دا وایی او بیا یوه شیبه غلی کیږی اودبوټونو په قالب کولو بیاپیل کوی پدی ترڅ کی هغه ته گورم او دده د څیری څخه داپه ډاگه کیږی چی هغه ډیر کالونه دژوند په خپانده دریاب کی لاهوشوی اودژوند نا خوالو هغه پوخ او کلك کړیدی. پدی معنی چی هغه کله دبی وزلی غم او کله دژوند نا خوالو اودگرغیړنو او فاسدو رژیمونولهامله دیوه بی وزره مرغه په څیر ژوند کاوه اورغړیده او کله هم دپوهی او علم نشتوالی دده دفعالیت ساحه او د ژوند چوکاټ ورتنگ کړی و دخپگان اوماْیوسی غبار یی لاتراوسه په سر اومخ کی ښکاریده.

بیاهم نوموړی خبروته لمسوم ا و پوښتنه تری کوم چی ترکومه ځایه اوپه څه ډول خپلو هیلوته ورسیدی؟

په یوه معنی لرونکی تبسم سره وایی: په ډاگه ده چی مرام او هدف ته رسیدل یووخت په کارلری او هغه هم هسی آسان نه دی، مبارزه په کارده هلی ځلی په کاردی، اوآن ومی لیدل چی ژوند می لرلر خراب اووړانیږی بله لاره می غوره کړه هغه لاره چی نوروراته لدی کبله چی موږ په تیاره کی ژوند کاوه جوړه کړی وه.

هوکی! هغه لاره چی په وړاندی یی ځلیدونکی هیلی او ارزوگانی درلودی. ددغه لاری دموندلو لپاره ډیروجنگیدم، زیارمی ویوست ترڅو زه هم زموږ د نورو زړورو هیوادوالو په څیر دتورتم څخه راووزم. په ریښتیا سره وایم چی کله دجدی شپږمی نیټی بد لون زموږ په هیواد کی منځ ته راغی د هغه ستر او ځلیدونکی څراغ په څیرو چی زموږ تورتم ژوند یی روښانه کړوچی البته دهغه په څنگ کی یی زموږ زړونه، زموږ مغزونه او بالاخره زموږ دژوندسمه لاره یی دتل لپاره وځلوله. اوس پوهیږم چی ژوند یعنی څه؟ دخپلواکه اونیکمرغه ژوندلپاره مبارزه یعنی په څه ډول؟

دغه ځوان اوربښتینی مبارز کارگر بیاهم وایی:

که چیری مړشم نور ارمان نه لرم ځکه چی ورځ په ورځ زموږ دټولو ژوندښه کیږی ځرنگه چی دولت یو کارگری دولت دی او تل زموږ دانقلابی دولت پاملرنه کارگرته ده، لدی نور ارمان نه لرم، انشاء الله وروورو زموږدټولو ژوند سمیږی لدی وروسته به زموږ دبی وزلو ژوند د انسان وژونکو دلاس نانځکه نه وی ددی لپاره چی دسر په سترگو گورو چی موږ ټولو یوتربله د ورورۍ لاس سره ورکړی ترڅو دهیواد دپرمختگ، ودانی او د خاوری دترقی لپاره دخپلی وینی ترآخرین څاڅکی پوری مبارزه وکړو. وینه تویوو او دخپلی خاوری اوهیواد دوښمنان دتل لپاره له منځه وړو په پای کی نوموړی ددغی فابریکی دټولو کارگرانو په نمایندگی خو پیشنهاده درلودل چی دادی هغه وړاندی کوو:

زه دټولوملگرو په نمایندگی له خپل مهربان دولت څخه داهیله کوم همدا ډول چی دکارگرانو معاشونه زیات شویدی او داپخپله ددولت د مهربانی اوپاملرنی ښکارندوی ده همدا رنگه څو. کوچنی غوښتنی لرو چی ښایی مسئول مقامات به پدی برخه کی هم پاملرنه وکړی:

که چیری دکوپون دتفاوت پر ځای پخپله کوپون موږته راکړی ډیرمناسب اوپرځای کاربه وی.

ځینی وختونه هغو کارگرانوته چی دشپی تراته نیمو بجو پوری په فابریکه کی پاتی کیږی او خلور افغانی دکرایی په توگه ورکول کیږی که چیری ددغوپیسوپرځای دکارگرانو درسولو لپاره موټر ورکړ شی دا به ډیره ستره مرسته وی ځکه کله دشپی پدی وخت کی موټرپه آسانی اوبیاهم په دغو (خلور افغانیو) کرایه نه پیداکیږی تر څو موږ ټاکلی ځای ته ورسوی.

دریم- په ځینی ځانگوکی لکه دخرمنی په ځانگه اوپاپه دول خانه کی هوا ډیره چټله او ککړه وی بایدکارگرانو ته داسی گالی تیار شی ترڅو دکوټی زاولی بوی دهغوی دماغوته ونه رسیږی اوهمدارنگه په اوونی کی یو ځل دډاکترانو له خوا معاینه او تداوی شی.

په پای کی چی ددوی دټولودبریالیتوب په هیله می خدای په آمانی وکړه اوپه ورسپارل شوی کار ورته لازیات بری غواړم.

(پروین قسیم)






دتحریر هیات ترنظرلاندی

مسؤول مدیر- محمودبریالی

پته - د بهرنیو چارو وزارت تهمخامخ

پستی صندوق - ۷۸۰

تیلفون - ۲۰۸٤۰

بانکی حساب ۱۰۱۸ پر ۹

دیکشنبی، سه شنبی او پنجشنبی دورځوپه سهار خپریږی

بیه -۲- افغانی

ویب آفسیت

دولتی مطبعه


## ددرواغو په څپو کی ....!

### «لاردانه» اعتراف!

ددروغو اتل، (هرو مرو پوهیږی چی څوك؟) بی.بی. سی دسه شنبی په ما ښام د جدی ۱٦ دانگلستان د بهر نیو چارو وزیر لارد کر نگتن مر که خپره کړه او د هغه په تر څ کی یی داسی نقل قول وکړ:

«دبریتانیا د بهر نیو چارو وزیر په غیر منتظره څر گنده وینا سره (اگه چی خطا شوی دی!) وویل: چی بی له شکه د پو ځی مر ستو ځینی بر خی افغا نی چریکا نو ته رسول کیږی خو نو موړی د دغوو سلو د لیږ لو د منبع دافشا کو لو څخه ډډه وکړه»

دغه اعتراف د «څوك څخه دوبښتانو شکو لو» ته ورته دی چی بی.بی.سی. هم هغه په غیر منتظره ډول وویل: «موږ دغه اعتراف دمبادا ورځی» لپاره ثبت کړ خو ښا غلی لارد. دی وبو هیږی چی نه «یوه برخه» بلکی بشپړی مر ستی د ټولو څخه اخواغلو او اشرارو ته ور کو ل کیږی. دغه «لاردانه» زړه سوی چی بشپړی مر ستی «یوه برخه» بولی ددی لپاره دی چی دراتلونکی سو لهځایولو لپاره یی د «نوك لاره» دمرستولپاره خلا صه وی.

خو دغه «وطنی غلو» ته به دمرستی منا بع مو ږ وښیو:

دسیا د مفر لانگلی څخه تر مصر او بیا تر چینی جوجو ما جوجو ترهیواد پوری ...

### دروغجن بی وزلی!

دامریکا غږ رادیو د جدی په ۱۷ خبر خپور کړ!

«... مسلمان مجا هدین (دنامسلمانو منافقینو داصل سره برابر) تراوسه(!) دافغا نستان د خاوری په سلو کی نوی برخه پخپل واك لری ...»

دجدی په ۱۹ د رویټر آژانس په کولا لمپور کی خبر ورکړ:

«حکومت یو ا ځی په افغانستان کی څلور ښارو نه د کابل او کندهار د دوو سترو ښارو نو په گډون په کنترول کی لری.

او «انقلابی» ضد څواکونو خپله واکمنی د هیواد په سلو کی پنځه اتیا بر خو باندی ټینگه کړیده او زیاتوی چی د شپی په وخت کی د دغه هیواد په پاتی بر خو کی «دشپی په سلو کی سل» دسترو ښارونو په گډون واکمنی لری.

موږ غو ښتل یو ټکی ووا یو: د لایوشاپو ویلو په و خت کی د حا فظی گناه ده! خو کو چنی محاسبه لازمی ده: زموږ دهیواد د خاوری په سلو کی پنځه اویا، زموږ دهیواد په سلو کی پنځه اتیا، زموږ دهیواد په سلو کی نوی او په شپه کی زموږ دهیواد په سلو کی سل! د خپلو «نیو لو» په قلمرو کی لری.

د دغو غټو ادعا گا نو په پام کی سا تلو سره، دانگلستان پارلمانی هیات د پا کستان تر پولی (تورخم) پوری ځی. عادی ژوند گوری اوددغو فتو حا تو ښیښی ښندا نی نه لیدل کیږی.

هرو مرو دغه ۷۵ - ۸۵ او په سلو کی ۹۰ خاوره دافغا نستان څخه بهر ده، دروا غجن خبر نه دی چی نشی کولای چی واقعیت په تیر ه مات کړی.

ای بی چاره گانو په دغو لایوسره!

## ورزش ورزش ورزش

### دښځو دوالیبال او باسکتبال د لو بو تورنمنت پای ته ورسید

دښځو دوالیبال دجام پیروزی په نامه دلوبو تورنمنت دجهش، مشعل ښوونی اوروزنی پولی تخنیك اوکابورا کلپونو په گډون، چی پخوا دپولی تخنیك په جمنازیوم کی پیل شوی و، پای ته ورسید.

پدی لوبو کی دمشعل دکلپ دوالیبال ټیم له شپږو امتیازونو سره لمړ ی مقام، دکابو را دکلپ دوالیبال ټیم له څلور وامتیازونو سره دوهم مقام اود ښوونی اوروزنی دکلپ ټیم دد ۍوامتیازونو سره دریم مقامونه وگټل.

همداراز دباسکتبال په لوبو کی د جهش الف ټیم لومړی، دجهش ب ټیم دوهم مقامونه وگټل.

دتورنمنت په پای کی لهدی امله چی ښځینه ورزشکارانو خپلی مسابقی په خاصو ورزشی تکنیکونواو مهارتونو په بری سره ترسره کړلی، یو شمیر ورزشی سامان آلات او دلومړی، دوهم او دریم مقامونو کپونه چی د ورزش دعالی ریاست او دالمپیك دملی کمیتی له خوا برابر شوی و، دالمپیك دملی کمیتی رئیس دیپلوم انجنیر نصیر احمد له خوا هغوی ته وسپارل شول.

ش. ف دحقیقت انقلاب ثورخبریال

### دشطرنج دجدیدا لشمولانو تورنمنت پای ته ورسید

دشطر نج د لو بو د جدید الشمولانو تورنمنت چی د هیواد د شپیتو تنو د شطرنج د با استعداده لوبغاړو تر مینځ، پخوا دالمپیك د ملی کمیټی دریاست له خوا، دورزش د عالی ریاست په ودا نی کی پیل شوی و، پای ته ورسید. پدی تور نمنت کی دشطرنج لو بغاړو خپلی لو بی په سویسی سیستم تر سره کړی چی په پای کی کمال الدین د ۵٫۲ امتیازونو او اتو نمرو په کټلو لمړی - دکرنی دپوهنځی محصل محمد نعیم د۳٫۹ نیمو امتیا زو نو اواتو نمرو په کټلو دوهم محمد بشیر کران د ۳٫۷ امتیا زو نو او ۸ نمرو په کټلو دریم مقا مو نه تر لاسه کړل. او هغه دسرو زرو، سپینو زرو او ژیړو مدالو نه او د شطرنج د څلورم کروپ اعتبار لیکونه یی چی دالمپیك د ملی کمیټی له خوا برابر شوی وو، وگټل.